مؤسسة العزائم
الإعلامية

# د مستونګ حادثه
# او
# د کفارو دسیسه



بسم الله الرحمن الرحيم

# د مستونګ حادثه او د کفارو دسیسه؟




مؤسسة العزائم

ذو الحجه ۱۴۴۶هـ

د مستونګ حادثه او د کفارو دسیسه!

الحمدلله وحده، والصلوة والسلام علی من لا نبی بعده.

اما بعد:

قال الله تبارک و تعالی: {يٰاَيُّهَا الَّذِيْنَ اٰمَنُوْا اِنْ جَآءَكُمْ فَاسِقٌ بِنَبَاٍ فَتَبَيَّنُوْا اَنْ تُصِيْبُوْا قَوْمًا بِجَهَالَةٍ فَتُصْبِحُوْا عَلٰى مَا فَعَلْتُمْ نٰدِمِيْن}، [سورة الحجرات: ۶].

ژباړه: اې مؤمنانو! که کوم فاسق تاسې ته له کوم خبر سره راشي نو تاسې تحقیق وکړئ نه چې تاسې کومې ډلې ته په ناپوهۍ سره ضرر ورسوئ او بیا پخپلو کړو پښیمانه شئ.

الله عزوجل په دې مبارک آیت سره مؤمنانو ته لارښونه کوي چې هر کله کوم خبر ځوک درته راوړي نو تاسو مخکې له دې چې هغه تایید کړئ یوځل د هغې په اړه تحقیق وکړئ، وګورئ چې دا خبر له کوم ځایه او د چا له لوري راوړی شوی دی؟ ایا دا خبر ریښتیا دی او که درواغ؟ منبع او هدف یې څه ده؟ د آیت په وروستۍ برخه کې د یاد تحقیق علت دا بیان شوی دی چې د اوریدلو سره سمدست تاسو هر خبر ومنئ او تایید یې کړئ په دې سره به تاسې ځیني خلکو ته ضرر ورسوئ، د هغوی زړونه به ودردوئ، هغوی ته به تکلیف ورسوئ او وروسته چې کله حقیقت درته څرګند شي نو تاسو به په خپلو دې کړو ډېر پښېمانه یاست، نو مونږ ته مخکې له پښېمانتیا خبرداری راکوي چې په پټو سترګو د هر چا خبرې پسې مه ځئ.

**محترمو مؤمنو ورونو او خویندو!**

لکه څرنګه چې تاسې خبر یاست چې په دې وروستیو کې د اسلامي دولت د مرستندویه مؤسسة العزائم له لوري یوه ۳۶ دقیقه ایزه ویډیو خپره شوه چې په هغې کې یې د مستونګ ساحې اړوند ځیني مسائل او هلته په دې وروستیو کې چې کومه حادثه رامنځته شوې وه د هغې په اړه یې وضاحت ورکړی و چې د هغې حادثې اصل حقیقت څه و.




د بلوچ بېلتون پالو تنظیم د روژې په مبارکه میاشت کې د اسلامي دولت په مرکز باندې په غدر او خیانت سره برید وکړ او هلته یې مجاهدین په شهادت ورسول.

د دې پېښې تایید په لومړي ځل د امریکا دلال زلمي خلیلزاد وکړ او په خپله تویټر پاڼه یې ولیکل چې بلوڅانو د اسلامي دولت پر مرکزونو حمله کړې او هلته یې د اسلامي دولت د خراسان څانګې اړوند ځیني مجاهدین په شهادت رسولي!

اما اسلامي دولت هغه وخت په دې اړوند کوم عکس العمل ونه ښود، مګر پس له پوره تحقیق او څېړنې یې دا دی د هغې اړوند خپل دریځ او همدارنګه د

هغې واقعې پوره معلومات له خپل مسلمان ولس سره شریک کړل.

له دې حادثې کفار او مرتدین غواړي په خپله ګټه استفاده وکړي او دا زمزمه کړي چې ګورئ مونږ نه ویل چې د اسلامي دولت مرکزونه په پاکستان کې فعال دي او دوی د پاکستان له خوا روزل کېږي؟! چې په داسې پوښتنو او ادعاوو سره یې خپل سفاهت او حماقت ټولې نړۍ ته څرګند کړی، ځکه هغه ویډیو چې هر څوک وګوري او انصاف ولري، خپله د قلم او فکر خاوند وي یعنې پلورل شوی نه وي نو داسې پوښتنې نه ورته را ولاړېږي ځکه هغه ویډیو کې پوره وضاحت ورکړل شوی او د دې پوښتنو او ادعاوو خلاف مسائل ترې له ورایه ثابتېږي.

**محترمو مؤمنو خویندو او وروڼو! زه په دې لیکنه کې ستاسو پام د همدې موضوع په اړه یو څو خبرو ته را اړوم هغه دا چې:**

۱- دوی ادعا کوي چې د اسلامي دولت مرکزونه په پاکستان کې دي، مونږ د دوی په ځواب کې وایو: ستاسو هدف له مراکزو څخه څه دی؟ د اسلامي دولت مراکز خو د نړۍ په ګوټ ګوټ کې دي هر چېرې چې مؤمنان دي هلته حتماً د اسلامي دولت د تعلیم او تربیت مراکز په مختلفو بڼو شتون لري!

۲- دوی به وایي چې نه زمونږ هدف دا دی چې مراکز په پاکستان کې دي او د پاکستان د مرتد نظام تر سیوري لاندې فعالیت کوي!

ښا! نو مونږ د دوی په ځواب کې وایو: چې که تاسو دا ادعا لرئ چې د پاکستان مرتد پوځ اسلامي دولت ته روزنه ورکوي، نو ایا تاسو سره څه ثبوت شته؟ ایا

په دې اړه مستند شواهد لرئ؟ حالانکې مونږ د دې خلاف مستند ثبوتونه او شواهد تاسو ته وړاندې کړل.

بله خبره دا چې: د اسلامي دولت په دې کوم مرکز چې بلوڅ مرتد تنظیم حمله کړې ایا تاسو خبر یاست دا چیرې دی؟

زه به درته ووایم چې چیرې دی. دا په هغه سختو غرنیو سیمو کې دی چې په عادي بوټانو او څپلکو کې هلته ګرځېدل نکیږي!

او دا په هغه غرونو کې دی چې د څښلو لپاره پکې صفا اوبه نه پیدا کیږي!

او دا په هغه غرونو کې دی چې اکمالات ورته په هفتو هفتو وخت نیسي او د مختلفو امنیتي چیکپاینټونو له خطر نه په تېرېدو سره دې غرونو ته ناچیزه ډوډۍ رسیږي! بیا هم که تاسو دا وایاست چې دلته پاکستاني مرتد پوځ ورته روزنه ورکوله نو بیا مونږ له تاسو دا پوښتنه کوو چې ایا بلوڅ بېلتون پالو ته هم د پاکستان پوځ روزنه ورکوي؟ او ایا بلوڅ بېلتون پال هم د پاکستان د پوځ د ولکې تر سیوري لاندې دي؟ که چیرې هو ووایئ نو دا به تر ټولو جاهلانه او احمقانه ځواب وي، او که چیرې وایئ چې نه هغوی خو له پاکستان سره جنګیږي هغوی څنګه د پاکستان د پوځ کسان کیدای شي! ځکه بلوڅ بېلتون پال په لیرې پرتو غرونو کې په ډیرې سختۍ سره شپې او ورځې سبا کوي! چې په هغه غرونو باندې د پاکستان پوځ اصلاً واک او سلطه نلري! نو مونږ وایو چې آفرین اصل خبرې ته اوس راغلئ! ځکه مونږ هم همدا وایو چې د اسلامي دولت مجاهدین چې په کومو غرونو کې اوسېدل د هغې غرونو سره متصل د بلوڅ بېلتون پالو مراکز هم په غرونو کې موجود وو!

په داسې حال کې چې هغوی د افغانستان او خصوصاً هند طاغوتي نظامونو

له لوري حمایت کېږي او په جار له نوموړو او نورو حتی له امریکا هم د کومک غوښتنه کوي!! نو څنګه د اسلامي دولت مراکز د پاکستان د پوځ روزنیز مراکز ګڼئ او د بلوڅ بېلتون پالو مراکز بیا د ازادۍ غوښتونکو مراکز! دا تعارض به څنګه له مینځه یوسئ؟!

۳- محترمو! طالب مرتدین غواړي په داسې افواهاتو سره د خپلې غلامۍ تور داغ له خلکو پټ کړي خو دوی چې هر څومره کوښښ وکړي بریالي به نشي ځکه د دوی غلامي د لمر په څېر روښانه ده! باوجود د دې چې په یاده ویډیو کې له پیله تر پایه د طالب مرتدینو او پاکستان مرتد نظام د یارانې او دوستانې مختلفې مرحلې په مستند ډول ښودل شوې دي، خو دوی بیا هم ځان ریښتوني مجاهدین ګڼي الله عزوجل د داسې منافقانو په اړه فرمايي: {وَ اِذَا قِیْلَ لَهُمْ لَا تُفْسِدُوْا فِی الْاَرْضِ قَالُوْا اِنَّمَا نَحْنُ مُصْلِحُوْنَ}، [البقرة:۱۱].
ژباړه: کله چې هغوی ته وویل شول چې په ځمکه کښې فساد مکوئ، نو هغوی وویل چې مونږ خو اصلاحات راوستونکي یو.
نو په همدې اساس، نن چې کله مونږ د طالب مرتدینو غلامي او کفر ثابتوو او اراده مو دا ده چې دوی له دې کفر لاس واخلي او الله تعالی ته رجوع وکړي نو دوی وايي چې مونږ خو سپینې کوترې یو مونږ خو د دین خادمان یو او داسې نورې ببولالې غږوي، اما دوی په دې نه پوهېږي چې تش په شعارونو څوک نه مسلمانېږي او نه هم په تشو دعوو نور ملامتولای شي. په هر صورت مونږ له دوی څو پوښتنې کوو که هر څه هم د انصاف او ریښتونولۍ تمه له دوی نلرو خو بیا هم ورته وایو چې په فکر او سوچ سره د دې ځواب راکړئ!

۱: ستاسو بنیاد چا کېښود؟ ستاسو تنظیم د چا له لوري او د چا په واسطه تأسیس شو؟

۲: مشران مو چا او چېرته يې وروژل؟

۳: په دې شل کلن تاریخ کې ستاسو مرکزي شوراګانې، د رهبرۍ او د تصمیم نیونې شورۍ چېرته وه؟ دا د کویټې شورۍ او د پېښور شورۍ نومونه د څه ښکارندوی کوي؟

۴: ستاسو تربیتي مرکزونه چېرته و؟ هر کال په ژمي کې به ستاسو دلګۍ مشران او کشران چېرته اوسېدل او په کوم هېواد کې يې استوګنه کوله؟

۵: بیا د دوحې د قرارداد د سناریو له پیله تر پایه ستاسو مشران له کوم ځایه او په کومو پاسپورټونو بهرنیو هېوادونو لکه قطر، ایران او ماسکو ته سفرونه کول؟ له دې خو انکار نشئ کولای او ولس هم د دې شاهد ده چې هغه پاکستان هېواد و حتی تر دې چې ملا برادلي د پاکستان په کراچۍ ښار کې په آزادانه ډول د خپلو زخمیانو په مینځ کې ولاړ او د خپل غدر او خیانت ګزارش د اتلولۍ په پوښ کې وړاندې کوي!

۶: په دې شل کلن بهیر کې ستاسو زیاتره نسبتاً جدي زخمیان چېرته تداوي کېدل؟

ایا دې پوښتنو ته ځوابونه لرئ؟

راشئ که هر څو د انصاف او عدالت تمه نه درڅخه لرو خو بیا هم درته وایو چې په خپل ځان ورحمېږئ، د خپلې دنیا او آخرت د سمون او سعادت لپاره دېته ریښتوني ځوابونه پیدا کړئ او ځانونه له دې هلاکت څخه وژغورئ!

**محترمو وروڼو او خویندو!**

مونږ او تاسو ته کره معلومه ده چې ددې پورتنیو پوښتنو ځوابونه ټول پاکستان دی او کوم چې بل چا ته منسوبېږي د هغې واسطه او ریښه هم پاکستان راوځي، نو د افسوس خبره نده چې نن داسې بین المللي اربکي ملېشې چې هر کافر او مرتد هېواد یې د خپلو شومو اهدافو لپاره د تشناب کاغذ په توګه استعمالوي هغه راځي او د اسلامي دولت په مخلصو او سپېڅلو مجاهدینو باندې بهتان او تورونه لږوي؟! دا ډېر د افسوس ځای دی چې ځیني خلک د دوی په نمایشي کړنو او اخطارونو چې خپل بادار ته یې کله ناکله ورکوي دوکه کېږي او دا انګېري چې ګواکې دوی رښتیا دښمني ورسره لري، مونږ په پوره جرأت سره دا وایو چې هر څوک به د پاکستان خلاف شي خو طالب ملېشې به هېڅکله د پاکستان خلاف او ریښتیني دښمنان نشي! مګر تاسو نه ګورئ چې همدا نن هم د دوی د نظام په څوکیو پاکستاني اتباع چې په اصل کې د آي ایس آی جاسوسان دي ناست دي او د ټاکل کېدو دا لړۍ جاري ده! زه له عام ولس نه پوښتم، چې ستاسو په کلیو کې چې کوم طالب جنګیالي وو هغوی به د ژمي موسم کې چېرته تلل؟

او نن دا دی لله الحمد دوی په ښکاره په پاکستان کې د جهاد د حرمت فتوی صادره کړه په داسې حال کې چې اسلامي دولت عملاً هلته په خپل مبارک جهاد بوخت دی او ټولو مسلمانانو ته دعوت او بلنه ورکوي چې راشئ د دې مرتد نظام پر خلاف جهاد کې له مونږ سره برخه واخلئ! نو دا د تعجب خبره نده چې اسلامي دولت دې د پاکستان لاسپوڅی او طالب چې هلته د جهاد د حرمت فتوی صادروي هغوی دې د پاکستان تر ټولو ستر دښمنان شي!! فتفکروا یا اولي الالباب.

دلته بې مورده نه ګڼم چې د پاکستان د ځیني سیاسیونو ویناوې هم د طالب مرتدینو اړوند ذکر کړم تر څو د دوی تاریخ ورپه یاد کړم او دا د غلامۍ په پایله کې چې د کوم قدرت نشې لیوني کړي دا به هم لږ ترې والوځي!

- بېنظیر بهټو، چې د پاکستان وزیر اعظمه هم پاتې شوې ده؛ نوموړې په ۲۰۰۰ میلادي کال کې د (لوموند) په نوم یوې فرانسوی ورځپاڼې سره په مرکه کې ویلي دي: د طالبانو د جوړولو فکر د انګلیس و! مدیریت یې امریکایانو په غاړه واخیست! مصارف یې سعودی په غاړه واخیستل او اسباب یې مونږ (پاکستان) مهیا کړل او طرح مو عملي کړه!!

- پرویز مشرف، په ۲۰۱۵ کال کې له بریتانوي (ګاردین) ورځپاڼې سره په مرکه کې ویلي دي: چې طالبان او مجاهدین (اووه تنظیمونه) د پاکستان قهرمانان وو، هغه دا ومنله چې دا دلې تېلې یې روزلې او جنګ ته یې لېږلې، نوموړی زیاتوي، چې د پاکستان د استخباراتو سازمان (ISI) له ۲۰۰۲ کال راپدېخوا د کرزي د حکومت د تضعیف لپاره د طالبانو د روزلو اقدام کړی.

- کرنل امام چې اصلي نوم یې سلطان امیر دی د پاکستان د استخباراتو یو لوړ پوړی چارواکی پاتې شوی و، هغه په خپل کتاب (د افغانستان جهاد) کې په واضح ډول دا ویلي دي: چې طالبان د پاکستان لخوا رامېنځته شول او هغوی یې روزنه کوي، نوموړی د خپل کتاب په یو بل ځای کې د هغو ۳۵ تنو د روزلو په اړه هم وضاحت ورکړی چې په هغوی کې د طالبانو اکثر مشران د ملا عمر، ملا داد الله، ملاعبیدالله او داسې نورو په شمول پکې شامل وو.

- همدارنګه د جنرال حمیدګل او نورو استخباراتي او غیر استخباراتي کړیو شواهد او بیانات چې په ښکاره ډول یې د طالب مرتدینو د حمایت اصلیت روښانه کړی.

**نو محترمو مؤمنو خویندو او ورونو!**

اوس همدا طالب مرتدین راځي او اسلامي دولت د پاکستان په غلامۍ متهموي دا ډېره عجیبه نده. دا داسې معنی لري لکه یوه رنډۍ او بدکاره ښځه بد کار وکړي او کوڅې ته راووځي په یوې سپېڅلې او پاک لمنې ښځې باندې د بدکارۍ تور پورې کړي!! نو دا به څوک ورسره ومني؟

اوس راځم د دې ویډیو اړوند یو څو خبرو ته.

وروسته له هغې چې اسلامي دولت دا ویډیو خپره کړه او په هغې کې یې بلوڅ بېلتون پالو سره د خپلې ښکاره دښمنۍ اظهار وکړ، نو ځیني کفار او مرتدین او ځیني جاهلان راپورته شول په اسلامي دولت یې دا تور پورې کړ چې اسلامي دولت د بلوڅ تنظیم سره د دښمنۍ په اعلانولو سره وښوده چې هغوی د پاکستان خلک دي!

عجیبه ده، زه د دې خلکو عقل او منطق ته خوب وېروم! چې دا به کوم جاهل او احمق سړی ادعا وکړي چې د یو چا سره د دښمنۍ اعلان به د هغې د دښمن سره د دوستۍ په معنی وي! حالانکې اسلامي دولت له بلوڅو سره د دښمنۍ د اعلان تر دمخه څو څو ځله د پاکستان له مرتد نظام سره خپله علني جګړه اعلان کړې ده او په خپل عمل کې یې هم ښودلې ده، لیرې نه بلکې دوه یا درې اونۍ وړاندې یې په پېښور کې یو استشهادي مجاهد د ابو ابراهیم الخراساني تقبله الله په نامه د پولیسو د یوه پاټک ترڅنګ خپل بارودي کمربند ته چاودنه ورکړه، چې په ترڅ کې یې څو تنه د یو غټ افسر په شمول مردار او زخمیان شول.

او نور کوم بې شمېره علمیات چې د پاکستان خلاف سرته رسېدلي تاسو کولای

شئ په دې وروستۍ خپره شوې ویډیو کې وګورئ نو حقیقت به درته څرګند شي.

مګر تاسو څو میاشتې مخکې ونه لیدل چې همدې پاکستان مرتد حکومت د اسلامي دولت یو مجاهد په امریکا وپلوره! دا دوه ورځې وړاندې یې څلور تنه آذربایجاني اسیر شوي مجاهدین د آذربایجان طاغوتي حکومت ته وسپارل! او دا اوس هم په سلګونو نه بلکې په زرګونو د اسلامي دولت مجاهدین د پاکستان له مرتد نظام سره اسیران دي! نو دا ټول د څه ښکارندوی کوي؟!

اما کوم خلک چې داسې له حقیقته لیرې او احمقانه تحلیلونه او تبصیرې کوي په دوی کې زیاتره هغه خلک دي چې د خپل تحلیل او تبصیرې خاوندان هم ندي، حتی د خپل فکر خاوندان ندي بلکې ټول یې د کرایې ملېشې دي، تاسو وګورئ کله چې د امریکا دلال او لوی سپي (خلیلزاد) دا تور پورې کړ نو کشرانو دلالانو هم په یوه خوله دا بې بنسټه خبره زمزمه کړه او په خپلو صفحاتو یې نشر کړه، چې په دغو بې اساسه درواغو خپرونکو کې ځیني د تېر جمهوریت مدني شغالان هم شامل و! مونږ دوی ته وایو مګر تاسو په دې تېرو شلو کلونو کې طالبان د پاکستان غلامان نه ګڼل؟ هره حمله مو پر پاکستان نه ورتپله؟ مګر تاسو نه وئ خبر چې د طالبانو اکثره د روزنې مراکز په پاکستان کې و؟

دلته لازمه ده چې د طالب مرتدینو د ارتداد او د پاکستان د غلامۍ یو بل ثبوت وړاندې کړم هغه دا چې د حکمتیار د حزب یو کس چې لله الحمد الله تعالی هدایت ورته کړی او د اسلامي دولت سره یو ځای شوی دی، یوه ورځ کیسه کوله چې: د ۲۰۱۵ م کال په وروستیو کې چې اسلامي دولت هم تازه په خراسان

ولایت کې اعلان شوی و او په ننګرهار کې یې فعالیت پیل کړی و، نو طالب مرتدینو غوښتل په هغوی برید وکړي له مختلفو ولایاتو ورته راحشر شوي و، چې په همدې لړ کې د پاکستان آي ایس آی د حکمتیار حزب ته خبرداری ورکړ، چې تاسو هم د اسلامي دولت خلاف جنګ لپاره له خپل حزبه افراد راکړئ! اما هغوی د رد ځواب ورکړی و! نو پاکستان ورته ویلي و که افراد نه راکوئ نو کوم د ټریننګ مرکز مو چې د خیبر پښتونخوا په تیراه سیمه کې دی، هغه له مینځه یوسئ (په داسې حال کې چې دا دومره کلونو دا مرکز فعال و خو د آي ایس آی په امر او اجازه لیک به د حزب جنګیالي له پولیسو تېرېدل) هماغه و چې حزب د دوی غوښتنه ونه منله او هغه مرکز یې له مینځه وېوړ اما جالبه خبره دا وه چې څو میاشتې وروسته په هماغه مرکز کې د طالبانو د ټریننګ او روزنې یوه ویډیو خپره شوه!! نو دا د څه ښکارندوی کوي؟

نو محترمو وروڼو! تاسو خپله ووایاست چې څوک په حقه دي؟ هغه چې ټوله نړی یې په خلاف ائتلافونه کوي که نه هغه چې ټوله نړۍ ورته ډالري کڅوړې او مرستې رالېږي؟

هغه چې د ټولې نړۍ په تور لیست کې قرار لري او که نه هغه چې د ټولې نړۍ له تور لیسته بهر دي؟

هغه چې په ټوله نړۍ د اسلامي خلافت قیام غواړي او که هغه چې د وطنیت په عقیده یې ایمان راوړی او له یوې محدودې جغرافیې د باندې فکر او سوچ نلري؟

هغه چې د الله عزوجل قانون په ځمکه نافذوي او که هغه چې د کندهار قبیله ای عرفونه او عادات نافذوي؟

هغه چې د اسلامي امت وحدت او برم غواړي او که نه هغه چې پرته له ځانه ټول اسلامي مذاهب محکوموي د هغوی مدارس او مساجد مسدودوي او علماء يې په شهادت رسوي؟
هغه چې د نړۍ هر کفري هېواد سره د جنګ اعلان کوي او که هغه چې د نړۍ ټولو کفري هېوادونو ته د امن او امنيت او د دوستۍ پيغام ورکوي او د هغوی پروژې او ماموريتونه سرته رسوي؟

**ګرانو او معزوزورونو او خويندو!**

تاسو د اسلام او د مجاهدينو صف ته دعوتوو، د دې طاغوتي نظامونو او اجيرو ډلو ټپلو په شيطاني جالونو کې مه ښکېلېږئ! له دوی ځانونه ليرې وساتئ او د الله تعالی د دين فهم حاصل کړئ! په ظاهري شکلونو مه غولېږئ! هره ډله د قرآن او سنت په تله وتلئ! تحقيق وکړئ له الله تعالی څخه اميد دی چې حق ته به ورسېږئ ځکه رب تعالی په خپل عظيم الشان کلام کې فرمايي: {وَالَّذِيْنَ جَاهَدُوْا فِيْنَا لَنَهْدِيَنَّهُمْ سُبُلَنَا}، [العنکبوت:۶۹].
ژباړه: کوم کسان چې زمونږ د (رضايت) لپاره او زمونږ د (دين د کاميابۍ لپاره) جهاد وکړي هغوی ته به خامخا مونږ خپلې لارې وروښيو.

**وآخر دعونا أن الحمدلله رب العالمين**

**والسلام عليکم ورحمة الله وبرکاته**